# په نېتونو پورې د ټولوعملونو مدار دی او هر سړي ته به د نیت سره سمه جزا ورکول کیږي

## منن لیک

په راکړو نعمتونو او پیرزونو مې د رب کریم او خالق پروردګار شکریه ادا کوم...

د ( **نېکو عملونو ته د هر مسلمان لاربنود** ) اړوند د لیکلو فکره که څه هم له کلنو راهیسې راسره پیدا وه خو د لیکلو بنه یې ډېره قلاره وه !!

په لومړیو کې په دې غور وم چې د ( **نېکو عملونو ته د هر مسلمان لاربنود** ) لیک بنه په دوو ټوکونوکې راوباسم ...

لومړی : د کتاب بنسټ چې په شرعي تفصيلي دليلونو شمول ولري.

دوهم : په عملي بنه لاربنود چې وسمهال دې مخې ته پروت دی .. دا د لومړي کتاب نچوړ او تطبيقي لنډيز دی .

د الله د ليکلي تقدير سره زمونږ فکر هم بدله شوه ، يو ورور مشوره راکړه چې لومړی بايد مختصر راوويستل شي او اصل يې که لږ وروسته هم شي خير دی ځکه چې هغه به وخت ډېر ونيسي .

د خپل ورور او نزدې ملګري شيخ / صلاح الدين الهاشم – حفظه

الله – د ( **اصوات** ) د موسسې مدير شکريه ادا کوم چې د دې فکرې بنسټګر دی ، په کار يې داسې پېل وکړ لکه دده چې خپل کار وي ، شپې يې پرې ورونېولې ، ټخپلو ځانګړو کارونو يې ورته اولويت ورکړ ..

د ګران ورور او پياوړي مسلکي ، نوښتګر او فني ماهر احمد قميحه څخه هم د زړه له کومې شکريه ادا کوم

له رب کريم څخه غواړم چې زما ثواب شريکي به وي.

ای الله له دې شخه د رپورې پناه غواړو
چې داسې شه درسره برخه دار
وګرځوو چېمونږ پرې پوهېږو ،
او د هغه شه درڅخه بخشش
غواړو چې مونږ پرې نه يو پوهه شوې

## دالۍ

نهایت زیات مشفق مور او پلار ته مې ...

هغو ښوونکو ته چې زما ښوونه او روزنه يې کړېده ..

د الله له پېرزونو وروسته هغه دواړه چې زه يې د پېرزو پور وړی یم ..

رب پروردګاره ! لکه څنګه چې يې زه راستر کړی یم دغسې پرې رحم وکړه ..

ای الله! وسمهال په مشرولۍ کې ورسره د احسان کولو زما مرستندويه شې .

بيا..

خپلې ګرانې کور ودانې ته مې...

چې د پسندو اخلاقو او د شريف نسب څښتنه ده..

زما د ژوند برخه داره او زما د بچو مور ده ...

ای الله ! په حق باندې مو زړونه راټول کړې ..

او ټول مو سره په خير او سعادت وساته ..

# نیکو عملونو ته د هر مسلمان لاربنود
## د شمېر له مخې

١ – : لومړی چاپ ( ١٠٠٠٠ ) نسخې و ، او ټولې نسخې په ( ٥٠ ) ورځو کې وپلورل شوې .

٢ – : د لومړي او دوهم چاپ څخه به د ورځې ( ١٠٠ ) نسخې پلورل کېدې.

٣ – : دوهم چاپ هم د خلوېښتو ورځو په تېرېدو سره ټول وپلورل شو.

٤ – : شپږ واړه چاپونه چې پنځه خلوېښت زره شمېر يې درلود ټول وپلورل شول .

٥ – : د ( **نېکو عملونو ته د هر مسلمان لاربنود** ) کتاب منځ پانګه د خير د کارونو ( ٤٣٠ ) نېټونه دي .

..........................................

## له هر څه نه مخکې

په ټولو عملونو، ويناګانو او حالاتو کې لومړی ترين او اړين شی د الله رضا غوښتل دي..

پاتې نور ټيتونه د لومړي نيت تابع دي، که وروسته هر څنګه وي خو په اخلاص کې خو ( نه پيدا کوي ) عيب، رب متعال زمونږ لپاره په نيت کې اخلاص راوستل مشروع کړيدي، او په دې يې مونږ ته شرافت راکړی دی .

شيخ صالح بن عبدالعزيز ال الشيخ- حفظه الله - وايي :

علماء وايي : که په دنياوي چارو کې د شارع( الله يا د هغه رسول ) د اجازې له مخې په يو کار کې د الله رضا وغوښتل شي، خپله اراده يې کله هم اخلاص نه ځپي .

- بيا وايي : د بېلګې په توګه لکه څوک چې خپلولي د الله د رضا په خاطر پالي، او ترڅنګ يې هغه څه هم موخه وي چې نبي کريم - صلى الله عليه وسلم - ورته هڅونه وکړېده، هغه فرمايي « مَنْ سَرَّهُ اَنْ يُبْسَطَ لَهُ فِيْ رِزْقِهِ وَيُنْسَاَ لَهُ فِي اَثَرِهِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ »

كتاب المحاضرات في الحج : ( ١٣ - ١٤ ) .

لنډه داچې لمړی نيت به د الله پاک رضا غوښتل وي .

## د ژباړن سريزه

الحمدلله والصلاة والسلام على رسول الله وبعد :

ډيرې خبرې نه ، يواځې دومره چې دنيکو عملونو دا سپېڅلی کتاب تر هر چا ورسيږي ..

اسلاميت او ايمان يې نوره هم وده وکړي..

هغه بې وزله خلک چې له دين څخه ناخبره دي تر څو خبر شي ..

هغه د دين مينوال چې د ديني زده کړو فرصتونه نه لري ...

ستاسو د روڼ مستقبل او روښانه اخرت په منظور مو له عربې څخه د ( دليل كل مسلم ومسلمة الى نوايا الاعمال ) د چاپ اوومه نسخه وژباړله .

**لقمان حکيم حکمت**

٢٠١٥ / ٠٨ / ٠٥

## سریزه

الْحَمْدُ للهِ رَبِّ الْعَلِمِيْنَ ، وَ الْصَلاَةُ وَ السَّلاَمُ عَلَى أَشْرَفِ الْأَنْبِيَاءِ وَ الْمُرْسَلِيْنَ ، نَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ وَ عَلَى آلِهِ وَ أَصْحَابِهِ وَ مَنْ تَبِعَهُمْ بِاِحْسَانٍ اِلَى يَوْمِ الْدِّيْنِ ، وَبَعْد :

( **نېکو عملونو ته د هرمسلمان لاربنود** ) څه شی دی ؟

دا هغه لیک بنه ده چې ستا اړین ترېنې پوښتنې ته ځواب وايي ، او دغه پوښته ده ..

« ته ولې دا کار کوې »

ته ولې قران لولې ؟

د مور اوپلار سره دې د ښې رويې لاملونه څه دي ؟

ولې د نورو خېرخواهي لټوې ؟

ولې د خلکو سره خېر ښېګړې کوې ؟

کوم لاملونه دې چې په نکاح کولو دې هڅوي ؟

دغه ټول کلمات ( علتونه .... لاملونه .... هڅوني ) ښخه مو په ( **نېکو عملونو ته د هرمسلمان لاربنود** ) تعبير کړی دی ، مونږ

داسې نه وایو چې ( **فلانکی کار ولې کوو** ) نا بلکې وایو : د قران کریم د لوستلو نیتونه ، د مور او پلار سره د نیکې رویې نیتونه ، د نکاح کولو نیتونه ..

**نیت کول ولې اړین دي** ؟

ځکه چې د عملونو نیتونه ته کله ویېژني نو ته به ...

۱ ) په یو عمل کې د ډیر اجر او ثواب د لاس ته راوړلو په نیت به هیله ولرې .

۲ ) د کار او کسب په خوند به پوهه شې ، د عادت له مخې نه په ډیره تلوسه او شوق به کار کوې ....

د دې ترڅنګ به په دې هم پوهه شې چې په لوی اجر علم لرل انسان ته کار او کسب هم اسانوي..

د دې نیتونو اخستنځای کوم یو دی ؟ او څنګه یې ټولګه ترسره شوه ؟

د ( **نېکو عملونو ته د هرمسلمان لاړښود** ) مې له قران کریم او نبوي صحیحو حدیثونو څخه راټول کړی دي ، په دې کتاب کې چې د څومره نیتونو ذکر راغلی دی ، هرومرو به قراني ایت او نبوي صحیح او یا حسن حدیث ته استناد لري ، په بنسټې توګه

مې د حدیث په صحت او حسن کې د لوی محدث علامه ناصرالدین الباني - رحمه الله علیه - په حکم باور کړی دی .

د ( **نېکو عملونو ته د هر مسلمان لارښود** ) ځخه زما موخه څه ده؟

زه له تا څخه غواړم چې د توان په اندازه د هغه کارونو نیتونه چې ته یې کول غواړې ځان ته خاضر کړې ، په دې هېله چې د اجرونو او ثوابونو لویه اندازه تر لاسه کړې ، ځکه چې ( **اِنّمَا الأَعْمَالُ بِالْنِّيّاتِ ، وَاِنّمَا لِكُلِّ امْرِئٍ مَا نَوَى** ) د عملونو مدار د نیتونو پورې دی ، او هر چا ته به د نیت سره سمه بدله ورکول کیږي ، کېدای شي دوه نفر سره یو څېر عمل باندې بوخت وي خو ولې په اجر او ثواب کې به سره ډېر توپیر لري ، د دې توپیر یواځنې لامل په نیتونو کې فرق دی .

له ( **نېکو عملونو ته د هر مسلمان لارښود** ) څخه د ګټې اخستو طریقه کار څه دی ؟

زما موخه دا نه ده چې ته دې هرومرو د ( **نېکو عملونو ته د هر مسلمان لارښود** ) کتاب وساتې ، نا بلکې زما موخه دا ده چې ( **نېکو عملونو ته د هر مسلمان لارښود** ) کتاب دې ستا په

جیب کې او تاسره هر وخت وي ، چې کله هم د یوکار کول غواړې ، له پیل څخه وړاندې لږ تم شه ، په لږ وخت کې کتاب له جیب څخه راواخله او د اراده کړې کار اړوند پرې نېتونه وګوره ، په ذهن کې یې حاضر او په زړه کې یې راوله ، په الله بروسه ولره او په کار پیل واچوه ، په دې توګه ته کولای شې له ( **نېکو عملونو ته د هرمسلمان لاړښود** ) څخه استفاده وکړې .

**بله خبره څو نشته ؟**

هو ولې نه ... شته ، مزید درڅخه دوه نور شیان هم غواړم...

لومړی : ستا نیکو مشورو ته وږی یم ، که په لسګونو نیک عملونه انسان وکړي ، کله هم له تېروتنې څخه خالي نه وي ، پاتې لا هغه څوک چې دا یې لومړی عمل وي !!

دوهم : که له کتاب څخه درته خیر او فائده درورسیږي ، نو ما دعاګانو کې مه هېروه ، څو که کتاب کې دې کومې تېروتنې ولیدې نو بخشش راله وغواړه ، شاید الله پاک راسره د خپل فضل او پیرزو له مخې ښه چلند وکړي .

## د اودس او طهارت نيتونه

**د اودس او طهارت په مهال به زه نيت کوم چې :**

١ - : د ايمان صفت په ځان کې پيدا کړم ، ځکه چې له مومن پرته په اودس څوک خيال نه ساتي.

٢ - : چې د قيامت په ورځ راپاڅېږم او د اودس له کبله مې له مخ او د بدن نورو غړو څخه رڼاګانې راپورته کيږي .

٣ - : چې د اودس د نور ( رڼا ) له کبله مې نبي کريم - ﷺ - د قيامت په ورځ وپيژني .

٤ - : دا به مې نيت وي چې د اودس د اوبو د هر څاڅکي سره راڅخه ګناهونه رژيږي ، او بالاخره د اودس په اخر کې له ګناه داسې پاک شم لکه په کومه ورځ مې چې مور زيږولی وم .

٥ - : په طهارت د خيال ساتلو له کبله جنت ته ننوځم .

٦ - : نيت به مې وي که اودس کې هر اندام دوه دوه ځله ووينځم الله به راله اجر دوه چنده راکړي ، خو که هر اندام مې درې درې ځله ووينځه نو د انبياو - عليهم السلام - اودس مې وکړ .

٧ - : که اودس وکړم او ورڅخه وروسته مسنونه دعا ( اَشْهَدُ اَنْ

لاَ اِلَهَ الاَ اللّهُ ) هم ووايم ، د جنت اته واړه دروازې به راته خلاصې شي .

۸ – : که په يخنۍ کې ( په يخو اوبو )يا په ګرمۍ کې ( په ګرمو اوبو ) پوره اودس وکړم ، الله به راله په جنت کې درجه لا پسې لوړه کړي .

۹ – : اودس کول د لمونځ دريمه برخه ده ، او اودس کول د لمونځ او خشوع کونجي ده .

۱۰ – : که په طهارت ويده شم ، د شپې په اوږدو کې به راله ملائک د خير دعاګانې غواړي.

۱۱ – : که په طهارت ويده شم او د شپې له مخې الله پاک څخه څه وغواړم او هغه راوبلم ، دعا به مې قبوله شي ، ځکه چې زه په طهارت ويده شوی وم .

## د لمونځ نيتونه

لومړی : لمونځ ته تلل

زه چې کله لمونځ ته ځم بايد نيت ولرم چې :

۱ – : په هر قدم به راله الله پاک لس نېکۍ راکړي او يا به راله

پرې درجه پورته کړ، او مسجد ته په تګ راتګ دواړو
کې به راڅخه یا الله پاک په هر قدم ګناه ورژوي .

۲ - : په هر قدم به راله الله پاک صدقه ولیکي .

۳ - : تر څو چې زه د لمونځ په نیت له کوره بهر یم، زه په لمونځ کې شمېرل کیږم .

۴ - : دا به مې نیت وي چې زه د الله پاک سره په ملاقات
بوخت یم، او د الله پاک سره له لیدو کتو نور څه بهتر
نشته .

۵ - : په دې نیت چې الله پاک به راله په جنت کې میلمستیا تیاره کړي .

۶ - : په دې نیت به لمونځ ته ځم چې الله پاک مې داسې استقبال کړي لکه څوک چې د خپل مسافر استقبال کوي .

۷ - : په دې نیت به ځم چې الله راله د مُحْرِم حاجي ثواب راکړي .

۸ - : په دې نیت به وځم چې زه د الله په ذمه کې یم، ځکه څوک چې مسجد ته ولاړ شي نو که ژوند یې پاتې وي د رزق او حفاظت ذمه یې الله پاک اخلي، او ژوند به یې هم د کرامت ژوند

وي ، او که مړ هم شي نو د خير په کار کې ورته مرګ راغی الله پاک به يې جنت ته داخل کړي .

**دوهم : د لمونځ انتظار کول ، او مسجدونو ابادول او پکې تم کېدل**

چې کله هم په مسجد کې د لمونځ يا ذکر لپاره کېنم بايد نيت مې وي چې :

۹ - : زه د الله تابعدار بنده يم ، تر څو چې مسجد کې يم له لمونځ ګوزارو څخه شمېرل کېږم .

۱۰ - : الله به راڅخه لغزشات او ګناهونه ورژوي او درجې به راله لوړې کړي .

۱۱ - : په دې سره به الله پاک راله د رباط ( جهاد کې د څوکېدارۍ ) اجر راکړي .

۱۲ - : د ملائکو د عاګانې به تر لاسه کړم .

۱۳ - : په دې نيت چې مسجد دوسته جوړ شم ، ځکه چې ملائک د مسجددوسته خلکو ملتيا کوي ورسره ناستې پاستې لري ، چې کله مسجد ته رانه شي پوښتنه يې کوي ، او که ناروغه شي تپوس يې کوي ، او که څه ته اړتيا ولري ورسره مرسته کوي .

۱٤ – :  د الله د رحمتونو په انتظار چې په مسجد دوسته خلکو راورېږي .

۱٥ – :  دغسې خلک الله پاک ملائکو ته فخراً يادوي .

۱٦ – :  په دې نيت چې د الله په ذمه کې شم .

۱۷ – :  په دې نيت چې الله راته د عرش سيورى را نصيب کړي .

۱۸ – :  په دې نيت چې متقي بنده جوړ شم ، ځکه مسجدونه د تقواداره خلکو کورونه دي .

۱۹ – :  په دې نيت چې د قيامت په ورځ د الله په ګاونډ کې راشم ، ځکه چې مسجد ودانه وونکي به د الله په ګاونډ کې وي .

**دريم : د مطلق لمونځ غوره والی**

**کله چې په لمونځ ودرېږم ، دا به مې نيت وي چې:**

۱ – :  ټول نيک عملونه مې قبول شي ، ځکه د قيامت په ورځ به عملونه هله د قبول وړ وي چې لمونځ  قبول شي .

۲ – :  په ټولو اعمالو کې لمونځ غوره ترين عمل دی .

۳ – :  په دې نيت چې لمونځ به په قبر او په پل صراط زما لپاره رڼا وي .

٤ – :  په دې نيت چې د ټولو ګناهونو د بخشش سبب مې لمونځ

کېدای شي ، د لمونځ په ادا کولو کولای شم چې له ګناهونو څخه داسې پاک شم لکه مور مې چې په لومړی ورځ زېږولی وم .

٥ – : په دې نیت چې په لمونځ به د شهیدانو او صدیقینو درجو ته ورسېږم .

٦ – : په دې نیت چې لمونځ مې له بدو او ناوړه کارونو څخه راېند کړي.

٧ – : په دې نیت چې الله پاک سره جرګه شم .

**څلورم : پنځه واړه لمونځونه په جماعت سره ادا کول**

**کله چې هم پنځه واړه لمونځونه په جماعت سره ادا کوم ، دا به مې نیت وي چې:**

١ – : په دې لمونځ مې موخه ټول هغه څه دي چې له کبله یې لمونځ ادا کیږي .

٢ – : زه د اسلام د یو رکن په ادا کولو بوخت یم .

٣ – : دا به مې جنت د دخول لوی لامل وي .

٤ – : هغه څه کول چې د الله خوښ وي ، ځکه په جماعت سره لمونځ ادا کول الله ته پسند دي .

٥ – : په دې نیت چې اوویشت درجې وګټم .

٦ – : په دې نيت چې سبا مې د الله سره په داسې حالت ملاقات وشي چې د لمونځ خيال مې ساتلى وي .

٧ – : په دې نيت چې که څلويښت ورځې لومړى تکبير ( تکبير تحريمه )راونيسم ، نو له نفاق او اور دواړو څخه به راته الله پاک برائت را کړي .

**– د صفونو دروست جوړول او خالي ګاوې ډکول**

**کله چې هم په صف کې نيمګړتيا او خالي ځاى ډکوم ، دا به مې نيت وي چې :**

١ – : الله ته محبوب ترين قدمونه هغه دي چې د صف د جوړولو او خاليګاو د ډکولو لپاره واخستل شي .

٢ – : په دې نيت چې ما صف جوړ کړ نو الله به مې ښه وپالي .

٣ – : په دې نيت چې الله پاک او د هغه ملائک به مې صفتونه وکړي .

٤ – : الله به راله پرې درجه پورته کړي .

٥ ـ : په دې نيت چې الله به راله پرې په جنت کې کور جوړ کړي .

- د سهار لمونځ

چې د سهار لمونځ په جماعت سره ادا کوم ، دا به مې نیت وي چې :

۱ – : د الله په ذمه کې شم .

۲ – : په دې نیت چې د شپې د تهجدو ثواب راته راکړل شي .

۳ – : په دې نیت چې د قیامت په ورځ د هغه چا له جملې څخه جوړ شم چې په بشپړه رڼا ورته زیری ورکول کیږي .

٤ – : په دې نیت چې ملائک راله ګواهي ورکړي .

٥ – : په دې نیت چې د سهار او مازدیګر ( بَرْدَیْن ) په ادا کولو جنت ته ولاړ شم .

٦ – : په دې نیت چې الله مې له اور څخه وساتي .

٧ – : په دې نیت چې د منافقت صفتونه راپکې شته نه شي ، ځکه منافقان د سهار او ماسخوتن لمونځونو ته نه حاضریږي

٨ – : په دې نیت چې رب کریم راله د عمرې ثواب راکړي .

٩ – : په دې نیت چې د سهار لمونځ نه وروسته تر لمر ښتو پورې کېنم او د الله یاد او ذکر وکړم ، تر څود پوره ، پوره او د پوره حج او عمرې ثواب تر لاسه کړم .

۱۰ – : په دې نیت چې د الله په وړاندې د جمعې د سهار لمونځ په

جماعت سره ادا کول غوره ترين عمل دی .

- **د مازديگر لمونځ**

**د مازديګر لمونځ چې کله کوم دا به مې نيت وي چې :**

١ - : په دې نيت چې د مازديګر او سهار( بَرْدَيْن ) په ادا کولو جنت ته ولاړ شم .

٢ - : په دې نيت چې له اور څخه راته الله پاک خلاصون رانصيب کړي .

٣ - : په دې نيت چې ملائک راله ګواهي وکړ ي .

٤ - : لمونځ په مخکنو امتونو هم فرض شوی و خو هغوی ضائع کړ ( ويې نه کړ ) که څوک يې ادا کولو ته ځانګړی پام ولري دوه اجرونه به ورکړل شي .

٥ - : په دې نيت چې په منځني لمونځ ( صلاة الوسطى ) خيال وساتم .

- **د ماسخوتن لمونځ**

**د ماسخوتن لمونځ چې کله کوم ، دا به مې نيت وي چې :**

١ - : د نيمي شپې د قيام ( لمونځ ) ثواب راته راکړل شي .

۲ - :　　په دې نیت چې د منافقانو له خویونو څخه لرې شم ، څکه هغوی د ماسخوتن او سهار لمونځ ته حاضري نه ورکوي .

۳ - :　　په دې نیت چې د حج په اندازه ثواب ترلاسه کړم .

## پنځم: د لمونځ د افعالو نیتونه

### ۱ - :　　استفتاح :

۱ - :　　د ( اَللهُ اَكْبَرُ كَبِيْراً وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَثِيْراً وَسُبْحَانَ اللهِ بُكْرَةً وَ اَصِيْلاً ) د ویلو سره به مې په نیت کې دا راځي چې د اسمان دروازې راته خلاصې شوې .

۲ - :　　زه چې ( اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ حَمْداً كَثِيْراً طَيِّباً مُبَارَكاً فِيْهِ ) وایم ، په نیت کې به مې دا وي چې دولس ملائک سره په ضد کې دي چې اسمان ته به لومړی څوک دغه کلمات وړي .

### ۲ - :　　کله چې ( امین ) وایم نیت به مې دا وي چې :

۱ - :　　که زما ( امین ) د ملائکو د ( امین ) سره په ویلو کې سمون وخوړ ، ټول مخکیني ګناهونه به راته معاف شي .

۲ - :　　د ( امین ) په ویلو سره به مې الله دعا قبوله کړي .

### ۳ - :　　له رکوع څخه له راپورته کېدو وروسته چې کله ( ربنا

ولک الحمد ) وايم ، نيت به مې دا وي چې :

١ - :     که زما (رَبَّنَا وَ لَکَ الْحَمْدُ) د ملائکو د ( رَبَّنَا وَ لَکَ الْحَمْدُ ) سره په ويلو کې سمون وخوري ، الله به راته ټول مخکني ګناهونه رابخشش کړي .

٤ - :     د ( التحيات ) په ويلو به مې نيت  وي چې :

١ - :     څوک چې ( السَّلَامُ عَلَيْنَا وَ عَلَى عِبَادِ اللهِ الْصَّالِحِيْنَ ) ووايي ، په اسمان او ځمکې کې ټولو نيکو بندګانو ته رسيږي .

٢ - :     په ( سَبَّابَه ) ګوته اشاره کول په شيطان باندې د تورې له ګوزار څخه هم سخت لګيږي .

٥ - :     په رکوع کې به مې نيت وي چې :

١ - :     يوه رکوع د لمونځ دريمه برخه ده .

٢ - :     په دې نيت به يې کوم چې الله مې يوه درجه پورته کړي او راڅخه يو ګناه لرې کړي.

٣ - :     چونکه په لمونځ کې راته ګناهونه په سر او ووږو پراته وي ، د رکوع په حالت کې راڅخه ولويږي .

٦ -     په سجده کې به مې نيت وي چې :

١ - :     سجده کول د لمونځ د دريمې برخې مساوي ده .

۲ – : دا به مې نېت وي چې په هره سجده راته الله يوه نيکي راکوي ، يوه بدي راڅخه رژوي او يوه درجه مې لوړوي .

۳ – : په دې نېت چې زه کله هم سجده کوم ګناهونه مې راته په سر کېښودل شي او ټول راڅخه ورژيږي .

٤ – : په دې نېت چې په سجدو راته د نبي – ﷺ – ملګرتوب په جنت کې نصيب شي .

٥ – : په دې نېت چې اور هغه اندامونه نه خوري چې سجده پرې شوي وي.

٦ – : په دې نېت چې د سجدې په حالت کې زه الله ته ډېر نږدې يم .

**شپږم : د لمونځ د افعالو نېتونه**

**کله چې د جمعې د ورځې لمونځ ته ځم ، دا به مې نېت وي چې :**

١ – : که د لويو ګناهونو له ارتکاب څخه مې ډډه کړې وي نو الله به راته د دوو جمعو ترمنځ کړې واړه ګناهونه رابخشش کړي .

۲ – : د راروانو لسو ورځو مزيد بخشش به راته الله هم وکړي .

۳ – : په دې نېت به ځم چې په اور مې الله پاک حرام کړي

٤ – : مسجد ته د لومړيتوب په اندازه به راته الله د صدقاتو او

خیراتونو ثواب را کړي.

۵ – :    په دې نیت به ځم چې په هر قدم راته الله پاک د پوره یو کال د روژې او تهجدو ثواب راکړي .

۶ – :    په دې نیت به ځم چې ممبر ته د امام له ښتو مخکې مې ملائک په خپلو رجسترونو کې نوم ولیکي .

**اووم : د نفلي لمونځونو نیتونه**

**کله چې زه نفلي لمونځ کوم ، دا به مې نیت وي چې:**

۱ – :    په دې سره د خپل فرضي لمونځ کوتاهي جبیره کوم .

۲ – :    په دې نیت چې د الله مینه تر لاسه کړم .

۳ – :    په دې نیت چې جنت ته د ( لمونځ له دروازې ) څخه ننوځم .

۴ – :    تر څو له مرګ وروسته یې ارمان ونه کړم ، ځکه هر چا ته چې مرګ راځي د دومره ژوند ارمان کوي چې دوه رکعته نفل پکې وکړي .

**د فرضو سره سنت لمونځ به په دې نیت کوم چې :**

۱ – :    په جنت کې راله الله کور جوړ کړي .

**د سهار سنتو کولو په وخت کې به مې نیت وي چې :**

۱ – : دا دوه رکعتونه له ټولې دنیا او څومره شیان چې په کې دي ورڅخه غوره دي .

**د ماسپښین څلور رکعته سنت به کوم، او دا به مې نیت وي چې :**

۱ – : دې لمونځ ته د اسمان دروازې بېرته کیږي .

۲ – : دا سنت د تهجد لمونځ برابر دي .

۳ – : که د ماسپښین لمونځ نه مخکې او وروسته څلور رکعته سنت وکړم نو الله به مې له اور څخه وژغوري .

**د مازدیگر سنت به په دې نیت کوم چې :**

۱ – : د الله رحمتونه او مهرباني تر لاسه کړم .

**د څاښت لمونځ به په دې نیت کوم چې :**

۱ – : د نبي کریم – ﷺ – په وصیت مې عمل راشي .

۲ – : دې لمونځ ته ملائک حاضریږي .

۳ – : په دې نیت چې د ( اوابینو ) څخه وشمېرل شم .

٤ – : په دې نیت چې د الله په لاره کې په غزا حاصل شوي غنیمت نه هم ډېر اجر تر لاسه کړم .

٥ – : په دې نیت چې د څاښت لمونځ د (۳٦۰) صدقو مساوي دی ، او هر انسان د دې اړتیا لري چې د خپلو درې سوه شپیتو

بندونو د خلاصون لپاره صدقه ورکړي .

٦ - : خو که په مسجد کې يې ادا کړم نو د عمرې ثواب پرې ګټلای شم .

٧ - : که په څاښت کې څلور رکعته وکړم نو د ورځ تر اخره پورې به مې الله پاک د ساتنې ذمه واري واخلي .

- **په کور کې نفل لمونځ کول :**

**په کور به نفلي لمونځ کوم ، او دا به مې نيت وي چې :**

١ - : له فرض پرته د انسان غوره ترين لمونځ هغه دی چې په کور کې وي.

٢ - : په کورکې نفل لمونځ د خلکو په مخ کې لمونځ باندې دومره برتري لري لکه باجماعت لمونځ چې يې په انفرادي لمونځ لري.

٣ - : په کور کې نفل لمونځ د خلکو په مخکې نفل لمونځ باندې دومره غوره والی لري لکه فرض لمونځ چې يې په نفل لري .

٤ - : په دې نيت به يې کوم چې که له کوره په داسې حالت کې ووځم چې دوه رکعته مې کړي وي نو له بد ځای څخه به ونه وځم .

٥ - : په دې نيت چې د دغې دوو رکعتونو په سبب مې الله په کور کې خير او برکت کېږدي .

٦ - : که کور ته د ننوتو په حالت کې دوه رکعته لمونځ وکړم ، نو زما لپاره به دواړه رکعتونه ددې سبب شي چې په کور کې به بد نه وينم .

- **د تهجدو نيتونه :**

<u>کله چې د شپې له مخې لمونځ کوم ، دا به مې نيت وي چې :</u>

١ - : د نبي کريم - ﷺ - په وصيت عمل وکړم .

٢ - : د فرض لمونځ څخه مې وروسته غوره ترين لمونځ ادا کړم .

٣ - : د ځان نه مخکې د افضل ترينو خلکو په مسلک روان يم .

٤ - : چې الله پاک راڅخه زما ګناهونه ورژوي .

٥ -: په دې نيت چې دا لمونځ به مې له بدو څخه راستنوي او د ګناهو په پرېښودو مې لوی مرستندويه وي .

٦ - : دا لمونځ د مومن د عزت او شرف نښه ده .

٧ - : د نورو مسلمانانو سره د داسې عمل په مسابقه کې يم چې د مسابقې وړ کار دی .

۸ - : په دې نېت چې په دغې ورځ تکره ، تونداو بېدار شم ، او هېڅ چا ته بد نېتي نه يم.

۹ - : په دې نېت چې د الله مينه او محبت تر لاسه کړم .

۱۰ - : په دې نېت چې جنت ته په ډاډ او اطمئنان ننوځم ، او په جنت کې د ځانګړي خونو څښتن شم .

۱۱ - : په دې نېت چې د شپې په نيمه کې الله ته تر هر چا ورنږدې شم .

۱۲ - : په دې نېت چې که له الله څخه هر څه وغواړم راته يې راکوي .

۱۳ - : په دې نېت چې د قرانکريم کومه برخه په نوافلو کې لولم چې الله پاک يې راته په يادو ياده کړي .

۱٤ - : په دې نېت چې زه قرانکريم په قيام ( تهجدو ) کې لولم ، نو زما سفارش به وکړي .

۱۵ - : چې الله مې په جنت کې درجې پورته کړي .

۱٦ - : هغه خاوند چې تهجدو ته خپله ښځه او هغه ښځه چې تهجدو ته خپل خاوند راپورته کړي ، الله به پرې رحم وکړي .

۱۷ - : سړي چې خپله ښځه کله تهجدو ته راپورته کړي او

دواړه دوه دوه رکعته تهجد وکړي الله پاک به يې په ( ذاکرينو ) کې وليکي .

١٨ – : ځوک چې د تهجدو نيت وکړي او ترې ويده پاتې شي ، د نيت په بنسټ ورته د تهجدو ثواب ورکول کيږي .

١٩ – : ځوک چې په تهجدو کې لس ايتونه ووايي ، له غافلينو څخه به ونه شمېرل شي .

٢٠ – : ځوک چې په تهجدو کې سل ايتونه ووايي ، له ( قانتينو ) څخه به وليکل شي .

٢١ – : ځوک چې په تهجدو کې زر ايتونه ووايي ، له ډېرو شتمنو څخه به وليکل شي .

## د مور او پلار سره د نيکۍ کولو نېټونه

<u>زه چې کله د مور او پلار سره نيکه رويه کوم دا به مې نيت وي چې :</u>

١ – : د هغوى سره نيکي کول د الله تعالى وصيت دى .

٢ – : د مور او پلار سره نيکي کول الله ته غوره ترين عمل دى .

٣ - :     مور او پلار مې له نور خلکو څخه په نیکۍ ډېر حقداردي .

٤ - :     ما سره د هغوی د نیکۍ او پېرزو کم ازکم لږه بدله به ورکړم.

٥ - :     د مور او پلار سره نیکي کول جهاد دی .

٦ - :     د مور او پلار د ښپو لاندې جنت دی .

٧ - : په دې نیت چې الله مې په رزق او عمر کې خیر او برکت واچوي.

٨ - :     په دې نیت چې الله راڅخه مشکلات پورته کړي .

٩ - :     په دې نیت چې الله راڅخه لوی ګناهونه ورژوي .

١٠ - :     په دې نیت چې د دواړو دعاګانې الله زما په حق کې قبولې کړي .

١١ - :     په دې نیت چې الله زما دعاګانې قبولې کړي .

١٢ - :     په دې نیت چې که مور او پلار راڅخه خوشحاله وي ، الله به رانه خوشحاله شي .

١٣ - :     د نبي - صلى الله عليه وسلم - او د جبريل - عليه الصلاة والسلام - له ښېراه څخه به بچ شم چې که د چا مور او پلار ژوندي وي او جنت ته يې له کبله

داخل نه شي نو تباه دې شي .

۱٤ – : پـه دې نيت چې له ازار يې ځان وساتم ، ځکه د هغوى ازارول لويه ګناه ده .

۱۵ – : پـه دې نيت ورسره نيکه رويه کوم چې د مور او پلار نه د ازاري انسان عملونه نه قبلیږي ، الله به ورته د قيامت په ورځ د رحمت په نظر ونه ګوري ، او نه به جنت ته ولاړ شي ، بلکې د الله د لعنت مستحق به وي .

۱٦ – : پـه دې نيت چې بچيان مې هم راسره نيکه رويه وکړي .

..........................................

## د مریضانو د پوښتنې متعلق نېتونه

**کله چې زه د مریض پوښتنه کوم دا به مې نیت وي چې :**

١ – : ما د خپل مسلمان ورور یو حق ادا کړ .

٢ – : د دې ملاقات بدله به راته الله راکړي .

٣ – : د پوښتنې په دوران کې زما ضمانت الله اخستی دی ، که زه په داسې حالت کې مړ شم چې د مسلمان ورور پوښتنه کوم ، نو الله به مې جنت ته داخل کړي .

٤ – : په دې سره جنت او میوې یې ګټلی شم .

٥ – : د دې دعا ګټل چې ( طِبْتَ وَطَابَ مَمْشَاكَ وَتَبَوَّأْتَ مِنَ الْجَنَّةِ مَنْزِلاً )

ترجمه : برکتي شې او قدمونه دې برکتي شه ، او په جنت کې د کور خاوند شه .

٦ – : په دې نیت چې زه د الله په رحمتونو کې غوپې وهم .

٧ – : په دې نیت چې تر ماښامه به راته اویا زره ملائک دعاګانې وکړي ، او که ماښام مې ورله پوښتنه وکړه نو تر سهار به راله اویا زره ملائک دعاګانې غواړي .

٨ – : په دې نیت چې اخرت راته رایاد کړي .

۹ - : په دې نيت چې مسلمان ورور ته به مې په دعا خير ورسيږي چې ( اَسْاَلُ اللّٰهَ الْعَظِيْمَ رَبَّ الْعِرْشِ الْعَظِيْمِ اَنْ يَشْفِيَکَ )

۱۰ - : د هغه نعمت ( صحت ) شکريه به ادا کړم چې ناروغه له لاسه ورکړې دی ، او دا دعا لوستل چې : ( الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ عَافَانِيْ مِمَّا ابْتَلاکَ بِهِ وَفَضَّلَنِيْ عَلَى کَثِرٍ مِمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيْلاً )

## د نورو نيکو عملونو نيتونه

« سبحان اللّٰه والحمدللّٰه ولا اله الا اللّٰه واللّٰه اکبر »

به وايم او نيت به مې وي چې :

۱ - : دا اللّٰه تعالی ته محبوب ترينې کلمې دي .

۲ - : دغه کلمات د ټولې دنيا نه او دنيا کې د ټولو شيانو نه نبي - ﷺ - ته محبوبې دي .

۳ - : دغې کلماتو ته اللّٰه پاک خيريت او غوروالی ورکړې دی .

٤ - : دغه کلمات چې څوک يو ځل ووايي ( ۹۰ ) نېکۍ به ورله وليکل او ( ۹۰ ) به ورڅخه ګناهونه ورژيږي .

٥ - : د دغې کلماتو هره يوه کلمه صدقه ده .

٦ - : دغه کلمات ګناهونه داسې رژوي لکه د ونې نه چې پاڼې

رژیږي .

۷ – : دغه کلمات د نیکو په تله کې ډېر وزن لري .

۸ – : دغه کلمات انسان له اور نه ساتي .

۹ – : دغه کلمات د جنت ونې بوټي دي .

۱۰ – : څوک چې د قران کریم تلاوت او جهاد او تهجد نه شي کولای دغه کلمات یې د ثوابونو ځای نیسي .

۱۱ – : دغه کلمات تر عرشه رسیږي او الله ته د هغه چا نوم یادوي چې دغه ذکر یې ویلې وي .

۱۲ – : څوک چې دغه کلمات ووایي ، الله ورته د ( صدّیق ) لقب ورکوي او دعاګانې یې هم قبلوي .

۱۳ – : که څوک سل ځله ( سبحان الله ) ووایي ، دومره ثواب به یې وشي لکه د اسمعیل – علیه السلام – له کورنۍ نه چې سل غلام ازاد کړي .

۱٤ – : که څوک سل ځله ( الحمدلله ) ووایي ، دومره ثواب به یې وشي لکه د الله په لاره کې چې سل بار اوښان خیرات کړي .

۱۵ – : که څوک سل ځله ( الله اکبر ) ووایي ، دومره ثواب به یې وشي لکه الله سل قبول کړي اوښان .

## د جنازې نيتونه

زه چې کله جنازه تياره وم دا به مې نيت وي چې :

١ – : څوک چې مړي ته غسل ورکړي او پرده پرې واچوي ، الله به يې په ګناهونو پرده واچوي .

٢ – : څوک چې مړي ته غسل ورکړي او حالونه يې ونه وايي ، ځلويښت ځله به ورته الله بخشش وکړي .

٣ – : څوک چې مړي ته د کفن بندوبست وکړي ، الله به ورته د جنت د پېړو او نرې وريښمو نه جامې ورواغوندي .

٤ – : څوک چې د مړی لپاره قبر وکني او پټې يې دفن کړي ، الله به ورته دومره اجر اوثواب ورکړي لکه ده چې ورله تر قيامته ورځ پورې کور ورکړی وي .

د قبرونو د زيارت او جنازو پسې د روانېدو په وخت ، او د تعزيې په وخت کې به مې نيت کې وي چې :

١ – : زړه مې نرم شي ، سترګې مې وژاړي او اخرت راته ياد شي .

٢ – : ما د خپل مسلمان ورور حق ادا کړ .

٣ – : په دې نيت چې زه د الله په ضمانت کې يم ، که په

دغسې حالتونو کې راته مرګ راشي ، الله به مې جنت ته بوځي .

٤ – : په دې نېت چې که جنازه مې پرې وکړه او دفن ته يې هم حاضر شوم دوه قيراطه ( **يو قيراط د احد د غر په څېر دی** ) اجر به وګټم .

٥ – : په دې نېت چې د قيامت په ورځ راته الله پاک د عزت پوښاک راواغوندي .

٦ – : په دې نېت چې د خپل مړ ورور سفارش به وکړم ، دعا به ورته وکړم چې الله يې ګناهونه بخشش کړي .

٧ – : په دې نېت چې د خپل مړ ورور په حق کې د رښتنولۍ او خير ګواهي ورکړم ، الله به زما ګواهي قبوله کړي او هغه به جنت ته داخل کړي .

## د نکاحونو نيتونه

**کله چې نکاح کوم ، دا به مې نېت وي چې :**

١ – : د الله په امر عمل کوم او د هغه شرعي مراد پوره کوم .

٢ – : د نبي کريم – ﷺ – سنت په عملي توګه منم .

٣ – : د نبي کريم – ﷺ – ارمان پوره کوم ، او د نسل په زياتولو يې

خوشحالوم .

٤ - : په دې نيت چې د دين نيماي حصه مې هم پوره شي .

٥ - : په دې نيت چې د خير خاوند شم ، ځکه نېکه ښځه د دنيا خزانه او نيکه ښکه ده .

٦ - : په دې نيت چې خپلې سترګې پرې ټيټې کړم او فرج پرې له حرامو نه وساتم .

٧ - : په دې نيت چې د مسلمانې ښځې سره ښه وکړم ، سترګې يې له پردو څخه راټيټې کړم او فرج يې له حرامو څخه وساتم .

٨ - : د هغه سړي سره به مرسته کوم چې د نکاح مقصد يې د حرامو نه ځان رابندول وي ، تر څو الله زما مرسته وکړي .

٩ - : په دې نيت چې الله راباندې د رزق او حلال مال دروازې رابېرته کړي.

١٠ - : د سرپرستی او مسوليت اجر به پکې الله راکړي .

١١ - : د لورګانو په تربيت به مې الله د قيامت په ورځ د جهنم اور نه په پرده کې کړي .

١٢ - : نېک عمله څوی به راڅخه پيدا شي او دعاګانې به راته کوي .

١٣ – :   که زما په ژوند کې مې بچي ومري ، له الله څخه به پرې د ثواب امېد ولرم .

## د الله د ذکر نېتونه

زه چې کله د الله ذکر کوم ، دا به مې نيت وي چې :

١ – :   د الله ذکر په ټولو عملونو کې د لوړې درجې والا ، پاک او بې ريا عمل دی .

٢ – :   په جهاد کې له انفاق کولو څخه هم بهتر دی .

٣ – :   د ذخيره کولو لپاره لويه خزانه ده که څوک يې ذخيره کوي .

٤ – :   په اجر او ثواب کې پرې ذاکر انسان له شهيدانو نه هم مخکې کېدای شي .

٥ – :   ذکر د انسان زړه ته قرار او ډاډ ورکوي .

٦ – :   په ذکر سره زړه ژوندی وي ، څکه څوک چې الله نه يادوي د مړي مثال لري .

٧ – :   ذکر په بدن کې قوت او بيداري پيدا کوي .

٨ – :   ذکر ټول غمونه له منځه وړي .

٩ – : ذکر انسان له نفاق څخه ساتي .

١٠ – : ذکر انسان له شېطان څخه ساتي .

١١ – : ذکر انسان له عذاب څخه ساتي .

١٢ – : څوک چې الله یادوي ، الله به یې هم په نوم یاد کړي .

١٣ – : ذکر د دې سبب دی چې الله به ماسره په هر حالت کې وي .

١٤ – : ذکر له انسان څخه ندامت او پښېمانتیا پورته کوي .

١٥ – : په ذکر سره د انسان دعاګانې قبلیږي .

.......................................................

## د خپلولۍ پاللو نېتونه

**کله چې زه خپلولي پالم، دا به مې نیت وي چې :**

١ – : ما داسې عمل وکړ چې الله ته ډېر زيات محبوب دی .

٢ – : ما د نبي کريم – ﷺ – په وصيت عمل وکړ .

٣ – : خپلولي پالل د ايمان نښه ده .

٤ – : په دې نيت چې الله مې رزق او بچي زيات کړي .

٥ – : په دې نيت چې الله راپکې برکت واچوي او زندګي مې درازه شي .

٦ – : په دې نيت چې خپلوان راسره مينه ولري .

٧ – : په دې نيت چې الله مې بچو کې خير واچوي .

٨ – : په دې نيت چې الله مې ګناهونه ورژوي .

٩ – : په دې نيت چې الله ما وپالي او مرسته راسره وکړي .

١٠ – : په دې نيت چې په دنيا او اخرت کې مې الله د خپل عذاب نه وساتي .

١١ – : په دې نيت چې د خپلولۍ په پاللو به ډېر اجر تر لاسه کړم .

١٢ - :    په دې نيت چې غوره ترينه صدقه هغه ده چې په خپلوانو وشي .

## د زکاتونو او خېراتونو نيتونه

زه چې کله زکات يا خيرات ورکوم ، دا به مې نيت وي چې :

١ - :    زه د اسلام له ارکانو څخه يو رکن ادا کوم .

٢ - :    زما لاس ورکونکی او غوره لاس دی .

٣ - :    چې د ورځې په لومړي کې د ملائکې په دعا کې راشم چې ( اللّٰهُمَّ اعْطِ مُنْفِقاً خَلَفاً ) ای الله ! هر صدقه کونکي ته عوض ورکړه .

٤ - :    په دې نيت چې الله مې مال ( شتمني ) نوره هم زياته کړي ، ډېرې بدلې به يې راکړي ، او دغه صدقه او خيرات به راله دومره وپالي  چې دغرونو په څېر به شي .

٥ - :    په دې نيت چې الله مې شتمني پاکه کړي ، او د مال شر راڅخه لرې کړي .

٦ - :    په دې نيت چې د خپل ايمان دليل وښايم .

٧ – : په دې نېت چې د خېر لویه درجه تر لاسه کړم .

٨ – : په دې نېت چې د ایمان خوند وڅښم .

٩ – : په دې نېت چې له ټولو رنځونو (مرضونو) څخه بچ پاتې شم .

١٠ – : په دې نېت چې په خیراتونو خپله ګناه ختمه کړم او د رب متعال غصه پرې مړه کړم .

١١ – : په دې نېت چې د ژوند د بدې خاتمې نه مې الله وساتي .

١٢ – : په دې نېت که مړشم د ژوند خاتمه به مې په صدقه شوې وي نو جنت ته به داخل شم .

١٣ – : په دې نېت چې د قبر تودوخه ( تودوالی ) را نه مړ ( ګل ) کړي .

١٤ – : په دې نېت چې له مرګ وروسته هم راته ثواب جاري وي.

١٥ – : په دې نېت چې د قیامت په ورځ یې سیوري ته ودرېږم .

١٦ – : په دې نېت چې الله مې ترو تازه وساتي .

١٧ – : په دې نېت چې صدقه مې د الله د عذابونو نه وساتي او ځان پرې ازاد کړم .

١٨ – : په دې نېت چې جنت ته په ډاډ لاړ شم .

١٩ – :	په دې نيت چې جنت ته د ( باب الصدقه ) له لارې داخل شم .

## د استغفار اوتوبې نيتونه

**د الله نه ځکه بخښنه غواړم او ورته توبه اوباسم چې ..**

١ – :	نبي – ﷺ – به هم په يوه ورځ کې سل ځله الله ته توبه ويسته او ورنه به يې بخشش غوښته .

٢ – :	په دې نيت چې د زړه هغه تور داغ چې د ګناهونو له سبب مې په زړه کې راغلی دی بېرته ختم شي او زړه مې پاک صفا شي .

٣ – :	په دې نيت چې برکتي بارانونه راووريږي

٤ – :	په دې نيت چې الله مزيد رزق راکړي .

٥ – :	په دې نيت چې په ځمکه کې الله برکت واچوي او فصلونه راوټوکوي.

٦ – :	په دې نيت چې الله مې قوي او بېداره کړي .

٧ – :	په دې نيت چې د ( طوبى ) ونه مې لاس ته راشي ، ځکه

د چا په عمل نامه کې چې ډېر استغفار ومومندل شي په انعام کې به ورته دغه ونه ورکول کيږي .

٨ – : په دې نيت چې په دنيا او اخرت کې مې الله پرده وکړي .

٩ – : په دې نيت چې غوره انسان جوړ شم ، ځکه توبه ويستونکي غوره انسانان دي .

١٠ – : ځکه چې نبي – ﷺ – مونږ ته وصيت کړی دی چې که له چا نه بد عملونه وشي بېرته دې توبه وباسي .

١١ – : په دې نيت چې تنګستيا او غمونه رانه لرې شي .

١٢ – : په دې نيت چې زړه ته مې خوشحالي راشي ، ځکه چې دبنده په توبه الله ډېر خوشحاليږي نو بنده پرې هم خوشحاله کړي.

١٣ – : په دې نيت چې د الله محبت تر لاسه کړم ، ځکه الله د توبه ويستونکو سره مينه لري .

١٤ – : په دې نيت چې الله مې ګناهونه رابخشش کړي .

١٥ – : په دې نيت چې بد عملونه مې الله په نيکو عملونو بدل کړي .

١٦ – : په دې نيت چې مور او پلار سره مې ښه وکړم ، ځکه ملائک د هغه چا مور او پلار ته دعاګاني کوي چې توبې ډېرې

وباسي .

١٧ – :     په دې نيت چې د الله فضل او مهرباني تر لاسه کړم .

## د سرپرستۍ او کارو کسب نيتونه

**زه چې کله د خپلې دندې ( وظيفې ) د ادا کولو لپاره ځم تر څو د خپل کور ټبر سرپرستي وکړم ، دا به مې نيت وي چې :**

١ – :     زه خپل مسوليت په ښه توګه ادا کړم ، او د الله په وړاندې خپله غاړه خلاصه کړم ځکه چې له هر مشر څخه به پوښتنه کيږي .

٢ – :     زه چې کله هم خپل ځان ، خپلې کورني او بچو ته ، خپلو مزدورانو ته خوراک ورکوم ، زما لپاره خيرات شمېرل کيږی .

٣ – :     د ډېر ثواب روپۍ هغه دي چې زه يې پخپلو بچو نفقه کوم .

٤ – :     دې لپاره چې جنتي شم ، ځکه هر حلال خور ، خيرات کونکی د بچو خاوند به جنت ته ځي .

٥ – :     خوک چې دخپلو بچو يا د خپل ځان لپاره ګټې وټې پسې ولاړ شي ، د الله په لاره کې شمېرل کيږي .

٦ – :     له ګناه نه ځان لرې ويستنه ، د هغه چا په حق کې چې

خپل ماتحت ( رعیت ) ضایع کړي .

٧ - : د ( ماتحت ) لپاره د حلال رزق درک کول تر څو په حرامو راو نه ټوکیږي .

٨ - : په دې خاطر چې د حلال رزق له مخې مې الله دعاګانې قبولې کړي .

## د اذان نیتونه

زه چې کله اذان کوم ، دا به مې نیت وي چې :

١ - : زه د مسلمانانو امانتګر جوړ شم .

٢ - : چې زه د الله پاک غوره بنده جوړه شم .

٣ - : چې په هغه اندازه راته الله ګناه بخشش کړي تر څومره چې مې اواز رسیږي .

٤ - : چې ټول هغه څه مې په حق کې ګواهي ورکړي او د ګناه بخشش راله وغواړي چې زما اواز یې اوریدلي وي .

٥ - : چې په حق کې مې د نبي - ﷺ - د بخشش او مغفرت هغه دعا قبوله شي چې اذان کونکو ته یې کړیده .

٦ - : په دې نیت چې د قیامت په ورځ مې اوږده غړۍ وي .

۷ - : په دې نېت چې الله د دومره خلکو ثواب راکړي چې ما سره یې لمونځ کړی دی .

۸ - : په دې نېت چې الله یې زما لپاره جنت ته د دخول سبب وګرځوي .

۹ - : په دې نېت چې زه به د شیطان د شړلو سبب شوی یم .

۱۰ - : په دې نېت چې الله راله په هر اذان شپېته نېکۍ او په هر اقامت دیرش نېکۍ راکړي .

.......................................................

## د امر بالمعروف او نهي عن المنکر نیتونه

پـه امر بالمعروف او نهي عن المنکر کې به مې نیت وي چې :

١ –  : زه د هغه امت غړی یم چې د خیر کارونو لپاره راوتلي دي .

٢ –  : په اسلامي دعوت کې برخه دار جوړ شم ، هغه سړی ډېر بد نصیبه دی چې په اسلام کې برخه ونه لري .

٣ –  : د پیغمبرانو – عليهم السلام – د دندې په ادا کولو به مشرف شم .

٤ –  : د الله په وړاندې به په هغه خلکو کې شمېر شم چې ښې خبرې کوي.

٥ –  : د خلکو دهدایت سبب به جوړ شم او د هغوی په نیکو عملونو کې به بیا ما ته هم اجر راکول کیږي .

٦ –  : که د خیر کونجي جوړه شم ، په جنت کې به د طوبی ونه به په انعام کې واخلم .

٧ –  : د الله په وړاندې به مې غاړه بنده نه وي .

٨ –  : په خلکو کې رواج ګناهونو به راته ضرر نه شي رسولای .

٩ – :	د الهي عذابونو او افتونو څخه به نجات ومومم .

١٠ – :	د الله له لعنت څخه به نجات ومومم .

١١ – :	الله به مې دعاګاني قبولي کړي .

## د ښو اخلاقو نيتونه

**کله چې د خلکو سره ښه اخلاق کوم ، دا به مې نيت وي چې :**

١ – :	ښه اخلاق د نبي کريم – صلى الله عليه وآله وسلم – د پيغمبرۍ خلاصه ده.

٢ – :	د الله مينه او محبت به وګټم ، ځکه الله ښايسته اخلاق خوښوي او د ښو اخلاقو څښتن سره مينه کوي .

٣ – :	د نبي – صلى الله عليه وآله وسلم – وصيت به ومنم ، هغه مونږ ته وايي ( وَخَالِقِ النَّاسَ بِخُلُقٍ حَسَنٍ ) د خلکو سره د ښو اخلاقو رويه وکړئ .

٤ – :	په دې نيت چې په ټولو خلکو کې د ښه اسلام او پوره ايمان څښتن شم .

٥ – :	اخلاق خپله لويه ښکلا او بې سارې زينت دی .

٦ – :	په دې نيت چې هغه څه ( خير ) تر لاسه کړم چې په دنيا کې انسان ته ورکول کيږي ، چې له ښو اخلاقو نه عبارت دی .

٧ - : په دې نېت چې په ښو اخلاقو به د روژه دار او د تهجد كونكي اجر وګټم .

٨ - : په دې نېت چې دقيامت په ورځ مې د نيكو اعمالو تله درنه شي .

٩ - : په دې نېت چې الله مې په اور حرام كړي .

١٠ - : جنت ته ډېر خلک په ښو اخلاقو ننوځي .

١١ - : په دې نېت چې په جنت كې راله نبي - ﷺ - د كور ضمانت وكړي .

١٢ - : په دې نېت چې نبي - ﷺ - ته له هر چا څخه نزدې شم .

١٣ - : په دې نېت چې د قيامت په ورځ له هر چا نه زه نبي - ﷺ - ته نزدې شم .

.....................................................

## د ذکر او اذکارو د مجلسونو نېټونه

**کله چې زه د ذکر کوم مجلس ته لاړ شم، دا به مې نيت وي چې :**

١ – : زه د جنت په باغيچو کې يم .

٢ – : ملائکې راڅخه شاوخوا ناستې دي .

٣ – : رحمت راباندې راورېږي .

٤ – : اطمئنان او ډاډ راباندې نازلېږي .

٥ – : دغسې مجلسونوکې ناسته د اسمعيل – عليه السلام – په اولاد کې د لسو غلامانو ازادولو نه هم ډېر ثواب لري .

٦ – : په مونږ باندې الله پاک خپلو ملائکو ته فخر کوي .

٧ – : په دې نيت چې الله به مو وبښي .

٨ – : په دې نيت چې الله به زمونږ دعاګانې قبولې کړي .

٩ – : په دې نيت چې د الله محبت به راله واجب شي .

١٠ – : په دې نيت چې الله به مو ټولې بدیانې په نيکيو بدلې کړي .

١١ – : په دې نيت چې د ذکر غنيمت تر لاسه کړو چې جنت

دی .

١٢ – :	په دې نيت چې د قيامت په ورځ به د رحمن ذات ښي اړخ تک سپين مخونه ناست يو ، پيغمبران او شهيدان به راسره پرې غبطه کوي .

## د خلکو سره د مرستې کولو نيتونه

**کله چې زه د خلکو سره مرستې کوم ، د هغو اړتياوې پوره کوم ، دا به مې نيت کې وي چې :**

١ – :	دا ډېر ښه او نيک کار دی .

٢ – :	دا عمل الله ته په خوښو او پسندو کارونو کې شمېرل کيږي چې څوک مسلمان خوشحالوي .

٣ – :	خلکو ته په ځان د الله د نعمت اظهار کول چې د دغې نعمت د دوام سبب دی .

٤ – :	د خلکو مرسته کول انسان د بدې خاتمې نه ساتي .

تر څنګ به يې دا هم ځان ته رايادوم چې ...

٥ – :	څوک چې د چا سره ښه کوي نو الله به دی سره مرسته وکړي .

٦ – :  څوک چې د مسلمان ورور تر هغه ملګرى شو چې حاجت يې ورله پوره کړ، په بدل کې به يې ورله الله په پل صراط قدمونه تر هغه ټينګ کړي تر څو تېر شي .

٧ – :  جنت ته به لومړى هغه څوک داخلېږي چې د خلکو سره مرستې کوي .

## د روژې نيتونه

کله چې زه روژه نيسم ، دا به مې نيت وي چې :

١ – :  په ثواب کې د روژې په څېر بل عمل نه شته .

٢ – :  د روژې ثواب الله خپله ورکوي (يعني ملائک يې نه ليکي)

٣ – :  په دې نيت چې روژه مې له اور څخه ډال شي .

٤ – :  په دې نيت چې په روژې له حرامو څخه په څنګ شم .

٥ – :  په دې نيت چې الله ته به تر هغه زما سفارش کوي تر څو جنت ته مې بوځي .

٦ – :  په دې نيت چې دوه ځله پرې خوشحاله شم ، د روژه ماتي په وخت کې او د الله سره د ملاقات په وخت کې .

٧ – :  په دې نيت چې د هغه خلکو په جمله کې شم چې د

معدې بېراس يې الله ته له مسکو څخه هم خوندور وي .

۸ - : په دې نيت چې الله مې دعاګانې قبولې کړي ، ځکه د روژه دار دعاګانې نه رد کيږي .

۹ - : په دې نيت چې په هر روژه مې الله مخ له اور څخه سل کاله لرې کړي .

۱۰ - : په دې نيت چې که د ژوند خاتمه مې په روژه راشي نو جنت ته به داخل شم .

۱۱ - : په دې نيت چې جنت ته د ( ريان ) د دروازې له مخې داخل شم .

## د قران کريم د تلاوت او يادولو نيتونه

<u>د قران کريم د تلاوت او يادولو په وخت کې به زما نيت وي چې :</u>

۱ - : د الله او د هغه د رسول مينه او محبت تر لاسه کړم .

۲ - : د قران کريم يو ايت ضبطول ( يادول ) له يوې اوښې يا ورسره مساوي د نورې شتمنۍ نه غوره دي .

۳ - : په دې نيت چې په هر ايت راته لس نيکۍ راکړل شي .

٤ – :	په دې نېت چې دقيامت په ورځ راله سفارش وکړي .

٥ – :	په دې نېت چې الله مې پرې نور هم پورته کړي .

٦ – :	په دې نېت چې له ګردو ګمراهيو او بې لاريو څخه مې د نجات سبب جوړ شي ، ځکه قران کريم له اسمان څخه تر ځمکې د الله راځړولې رسۍ ده .

٧ – :	په دې نېت چې قران کريم په ځمکه کې رڼا او په اسمان کې راله ذخيره کيږي .

٨ – :	په دې نېت چې زه په غوره ترينو خلکو کې راشم ، ځکه هغه انسان ډېر غوره دی چې خپله هم قران زده کړي او بل ته يې هم ورزده کوي .

٩ – :	په دې نېت چې د غوره ترينو عزتمندو ملائکو په دوستانه کې راشم .

١٠ – :	په دې نېت چې قاري صيب ارذل العمر ته نه رسيږي .

١١ – :	په دې نېت چې د عزت تاج را پر سر او د کرامت چپن راپر غاړه شي ، او الله هم راڅخه راضي شي .

١٢ – :	په دې نېت چې مور او پلار ته مې د نور ( رڼا ) تاج ورپه سر او د جنت چپن ورپه تن شي .

١٣ – :     په دې نیت چې زه جنتي او الله ته نزدې ترین بنده جوړ شم .

١٤ – :     په دې نیت چې الله مې په اور ونه سوځوی .

................................................

## د الله د رضا په خاطر د
## چا سره د مینې او محبت نېتونه

زه چې کله د الله لپاره د چا سره مینه او محبت کوم ، دا به مې نیت وي چې :

١ – : د الله د رضا لپاره مینه کول د ایمان قوي رسۍ ده .

٢ – : په دې نیت چې د ایمان د پوره والي نښه ده .

٣ – : په دې نیت چې د ایمان خوند وڅکم .

٤ – : په دې نیت چې د الله مینه تر لاسه کړم .

٥ – : په دې نیت چې د الله له پلوه کرامت تر لاسه کړم .

٦ – : په دې نیت چې د رڼاګانو په ممبرنو دالله دعرش د سیورې لاندې کېنم .

٧ – : په دې نیت چې د الله د هغو اولیاوو څخه جوړ شم چې هیڅ خفګان ، هیڅ پریشاني ، او هیڅ ډار نه محسوسوي .

## د علم د طلب كولو نيتونه

زه چې كله علم طلب كوم ، دا به مې نيت وي چې :

١ - : يوه الهي فريضه ادا كوم .

٢ - : په دې نيت چې په ما به د الله دخير اراده وي .

٣ - : په دې نيت چې ملائک راته تواضع وكړي ، ما ته خپلې وزرې خورې كړي او ما پخپلو وزرو كې سيورى كړي .

٤ - : په دې نيت چې هغو خلكو كې شمېر شم چې د الله په لاره كې وتلي وي .

٥ - : په دې نيت چې د الله په لار كې د تللو مجاهدينو اجر ترلاسه كړم كه علم مې د نبي - ﷺ - په مسجد كې حاصل كړ .

٦ - : په دې نيت چې كله په مسجد كې اسلامي تعليم زده كوم ، دپوره حج ثواب به راكړل شي .

٧ - : په دې نيت چې الله راته جنت د تللو لاره اسانه كړي .

٨ - : په دې نيت چې هر مخلوق راله بخشش وغواړي .

٩ – : په دې نیت چې الله مې درجې پورته کړي .

١٠ – : په دې نیت چې د پیغمبرانو میراث واخلم .

١١ – : په دې نیت چې د الله څخه د وېرې او ورسره د محبت لوړ مقام ته ورسېږم .

١٢ – : په دې نیت چې د هغو خلکو له جملې څخه نه شم چې د الله بدي شي ، چې د دنیا د کټلو چلونه ورته یاد وي او له اخرت نه ناخبره وي .

١٣ – : په دې نیت چې له نفاق څخه روغ جوړ او سالم پاتې شم ، ځکه په منافق کې دیني پوهه او ښه سکوت دواړه صفتونه نه یوځای کیږي .

١٤ – : د نبي – ﷺ – په وصیت عمل وکړم ، او له الله څخه وغواړم چې ګټور علم را په برخه کړي .

.........................................

## د دعاګانو نیتونه

کله چې زه الله رابلم او ورته اواز کوم ، دا به مې نیت وي چې :

١ – : زه الله ته په غوره ترین عبادت بوخت یم .

٢ – : په دې نیت چې د نبي – ﷺ – په وصیت عمل کوم چې هر څوک باید له الله څخه خپله اړتیا وړ شیان وغواړي .

٣ – : په دې نیت چې د رزق د حصول لپاره شرعي اسباب په کار واچوم.

٤ – : په دې نیت چې ټول حاجتونه ، خپل فقر او مسکنت د الله په دربار کې وړاندې کړم ، یقیني ده چې الله عاجل یا اجل رزق را کړي .

٥ – : په دې نیت چې الله راڅخه مشکلات لرې کړي .

٦ – : په دې نیت چې سستې څخه لرې شم ، ځکه هغه انسان ډېر بې وسه دی چې دعا هم نه شي کولی .

٧ – : په دې نیت چې الله راباندې کړاوونه رانه ولي .

٨ – : په دې نیت چې الله به راله دعاګانې ذخیره کړي او د قیامت په ورځ به مې پرې د نیکیو تله درنه کړي .

۹ – : په دې نیت چې الله هر وخت راسره شي .

۱۰ – : ځکه چې څوک د الله نه څه وغواړي ، هغه ته حیا ورځي که څه ورنه کړي .

۱۱ – : په دې نیت چې الله له هر چا نزدې دی چې امید ترې وساتل شي او دعاګانې ورڅخه وغوښتل شي .

........................................................

## په محمد رسول الله – ﷺ – باندې د درود ویلونېتونه

**زه چې کله په نبي کريم – صلى الله عليه وسلم – درود او سلامونه وايم ، دا به مې نېت وي چې :**

١ – : الله په ما ثنا ووايي ، لس درجې مې پرې لوړ کړي او لس راله نيکياني راکړي او لس راڅخه بدۍ ورژوي .

٢ – : په دې نېت چې د درود په وړلو مقرره ملائکه زما درود نبي کريم – ﷺ – ته يوسي ، او ورته ووايي : اې محمده – ﷺ – پلانکی د پلانکي ځوی درباندې سلام وايي .

٣ – : په دې نېت چې الله بېرته پيغمبر – ﷺ – ته روح راواستوي او زما سلام ته ځواب ووايي .

٤ – : په دې نېت چې ملائک راباندې ثنا ووايي .

٥ – : په دې نېت چې نفس مې له ګناهونو او زړه مې له حسدونو څخه پاک شي .

٦ – : په دې نېت چې خفګانونه مې لرې شي او زړه مې پاک شي .

٧ – : په دې نيت چې د قيامت په ورځ د نبي – ﷺ – د ملګرتوب ور وګرځم .

٨ – : په دې نيت چې د قيامت په ورځ نبي – ﷺ – ته تر هرچا نژدې يم .

٩ – : په دې نيت چې د قيامت په ورځ يې ارمانونه ونه کړم .

١٠ – : په دې نيت چې بخيل جوړ نه شم ، ځکه چې دنبي کريم – ﷺ – دنوم د يادېدو سره چې څوک درود ونه وايي ، لوی بخيل دی .

١١ – : څوک چې په نبي – ﷺ – درود پرېږدي ګويا که د جنت لاره يې پرېښوده .

١٢ – : د نبي – ﷺ – او د جبريل – عليه الصلاة والسلام – له ښېراه نه ځان ساتل د هغه چا په حق کې چې څوک ورباندې درود نه وايي .

١٣ – : په دې نيت چې الله مې دعاګانې قبولې کړي .

## د حج او عمرې نېتونه

**زه چې کله حج یا عمرې ته ځم ، دا به مې نیت وي چې :**

١ – : زه د اسلام د ارکانو نه یو رکن پوره کوم .

٢ – : د اسلام له برخو څخه مې یوه برخه تر لاسه کړه .

٣ – : په خورا ښایسته او غوره ترین جهاد مې قیام وکړ .

٤ – : دومره غوره ترین عمل کوم چې په نور عملونو دومره خیریت لري لکه د مشرق او مغرب ترمنځ فاصله .

٥ – : خپل مخکني ګناهونه او سرغړوني نړوم .

٦ – : له ګناهونو څخه به داسې پاک شم لکه د مور څخه چې له ګناهونو څنګه پاک پیدا وم .

٧ – : په دې نیت چې جنت ته داخل شم .

٨ – : په دې نیت چې له ځان نه ګناهونه او فقر و فاقت لرې کړم .

٩ – : په دې نیت چې له کوره د وتلو سره سم به راله یوه یوه

نيکي ليکل کيږي ، يوه يوه به رانه ګناه رژيږي ، او يوه يوه درجه به پورته کيږم .

١٠ – : په حج او عمرې کولو د الله امر ته غاړه ږدم .

١١ – : په دې نيت چې د الله په وفد کې شامل شم .

١٢ – : په دې نيت چې د الله په رعايت کې شم .

١٣ – : ترڅو له هغو محرومينو له جملې څخه نه شم چې د الله کور ته په وفد کې ورنه شي .

١٤ – : په دې نيت چې الله به راله دعاګانې قبولې کړي.

١٥ – : په دې نيت چې که د حج نه کور ته څومره په تونده راستون شم ، ډېر اجر به مې وشي.

١٦ – : په دې نيت چې څومره ستړى او ستومانه شوى يم ، څومره شتمني مې لګيدلې وي ، هومره به راته اجر او ثواب راکړل شي .

١٧ – : په دې نيت چې حج ته په لاره کې ومرم ، تر قيامته به راته د حج ثواب راکول کيږي .

**د احرام او تلبيه ويلو په وخت کې به مې نيت وي چې :**

١ – : د دغې ورځ د لمر پريوتو سره به رانه ټول ګناهونه

ورزېږي .

٢ – :	هر شی به راسره تلبیه وايي .

٣ – :	زما اواز چې څومره شیانو اورېدلی وي د قیامت په ورځ به راله ګواهي وکړي .

٤ – :	په اوچت اواز تلبیه ویلو سره به وکولی شم چې حج په غوره طریقه تر پایه ورسوم .

٥ – :	د هرې تلبیې سره به راته په حج زیری راکول کیږي .

**د عرفې په ورځ به مې نیت کې وي چې :**

١ – :	په ما باندې الله پاک په ملائکو فخر کوي .

٢ – :	الله به راته ټول ګناهونه بخشش کړي .

٣ – :	الله به رانه د ژوند ستړې پورته کړي .

٤ – :	الله به مې له اور څخه ازاد کړي .

٥ – :	الله به مې هغه دعاګانې قبولې کړي چې ما ځان ته او نور خلکو ته کړې دي .

٦ – :	الله به راباندې نور خپل فضل او کرم هم وکړي .

**په جمراتو کې به مې نیت کې وي چې :**

١ – :	د قیامت په ورځ به راته د هر کاڼي ویشتو په بدل کې رڼا

را کړل شي.

٢ - : د هر کانې ویشتو سره به رانه لویه ( کبیره ) هلاکونکې ګناه ورژیږي.

٣ - : په هغې نعمتونو او سترګې یخونکو پیرزینو باندې خوشحالیدل چې الله راله ذخیره کړي دي .

**د قربانۍ په وخت کې به مې نیت کې وي چې :**

١ - : الله زما لپاره دا قرباني ذخیره کوي .

٢ - : د قربانۍ په کولو سره حج په غوره توګه ادا کول .

**د ویښتاو د خریلو یا کمولو په وخت کې به مې نیت کې وي چې :**

١ - : د بخشش او مغفرت متعلق د نبي کریم - ﷺ - دعا تر لاسه کړم .

٢ - : د هر ویښته په بدل کې به راته نیکي او یوه به راڅخه بدي ورژیږي .

٣ - : دهر ویښته په بدل کې به راته د قیامت په ورځ رڼا را کړل شي .

**د حجر اسود د ښکلولو سره به مې نیت کې وي چې :**

١ -: په دې سره رانه ګناهونه رژول کیږي .

۲ – : د قیامت په ورځ به راله ګواهي وکړي .

۳ – : د جنت یوې برخې سره لاس لګوم .

## په طواف کې به مې نیت وي چې :

۱ – : په هر قدم راته یو نیکي را کول کیږي ، یوه راځخه بدي رژیږي او یوه یوه درجه راته لوړتیا راکول کیږي .

۲ – : د طواف د دوو رکعتونو سره به راته د غلام د ازادولو هومره ثواب راکړل شي .

## په سعي کې به مي نیت وي چې :

۱ – : د اویاو غلامانو د ازادولو هومره ثواب به راکړل شي .

## په طواف الوداع کې به مې نیت وي چې :

۱ – : له ګناهونو څخه به داسې پاک شم لکه په کومه ورځ چې له مور څخه د ګناهونو نه پاک پیدا شوی وم .

۲ – : یوه ملائکه به راشي او د ولو ( اوږو ) تر منځ به راته لاس کیږدي او راته وایي ، که په مستقبل کې هر څه کوې خو تېر ګناهونه دې معاف شول .

.........................................................

## په مصيبتونو کې نېتونه

**که راباندې مصيبتونه راشي ، دا به مې نيت وي چې :**

۱ – : د خيريت توفيق راکړل شو .

۲ – : الله چې رانه څه واخستل له دې څخه به غوره راکړي .

۳ – : په دې مصيبت سره به راته الله دنيا او اخرت رڼا کړي .

٤ – : د الله له پلوه تحفه حاصلوم چې صبر دی .

٥ – : د پيغمبرانو او نيکانو خلکو په لاره روان يم .

٦ – : په دغې مصيبتونو به رانه الله ګناهونه داسې ورژوي لکه د مور څخه چې د ګناهونو نه څنګه پاک پيدا وم .

۷ – : الله به پرې جنت راکړي .

۸ – : که په دغې مصيب کې مړ شم الله به مې وبښي .

۹ – : د الله سره به په داسې حالت کې ملاقات وکړم چې هيڅ ګناه به مې نه وي پاتې .

۱۰ – : په صبر کولو به د الله امر ومنم .

١١ – : زه به د کامیابو او مهتدینو له جملې څخه شم .

١٢ – : په دې نېت چې بې حسابه اجرونه الله راکړي .

١٣ – : په دې نېت چې الله راسره دی .

١٤ – : په ( ملا اعلی ) کې به راباندې الله ثنا ووایي .

١٥ – : د الله رحمتونه به حاصل کړم .

١٦ – : بخشش او لوی اجر به راته راکړل شي .

١٧ – : دالله محبت به راته راکړل شي .

١٨ – : الله به راله درجې لوړې کړي او د جنت لوړ پوړه ماڼې به راکړي.

## هغه څه چې په صبرکولو راسره مرسته کوي :

١ – : د مسلمان هر حالت خير خير دی .

٢ – : زه بنده یم ، د خپل بادار په فیصله هیڅ اعتراض نه لرم .

٣ – : زما د الله سره محبت دی ، او حبیب د خپل محبوب په کارونو نه خپه کیږي .

٤ـ : زما په ټولو چارو الله ښه پوهیږي ، زه يې حکمونو ته تیار یم .

٥ – : په الله مې دا یقین دی چې په دې مصیبت کې به يې زما

لپاره خير اچولی وي .

٦ - :   د الله په پرېکړه خوشحاله يم ، په دې عقيده به رانه الله خوشحاله شي .

٧ - :   له لاسه چې مې څه ووتل د الله ملکيت و، ماسره يې امانت ايښې و بېرته يې رانه واخست .

٨ - :   د الله پرېکړې څوک نه شي بدلولی ، هغه په خپلو پرېکړو کې د عدل ذات دی .

٩ - :   مصيبت يې ځکه راباندې راوستو چې راسره يې مينه ده .

١٠ - :   سخت مصيبت مې په کلک ايمان او غښتلې ديانت لويه نښه ده .

١١- :   چې مصيبت چې څومره لوی وي هومره يې ثواب هم لوی وي .

١٢ - :   د مصيبت نه مخکې چې مې څنګه دخير کارونه کول ، د هغې اجر به راله الله پاک د مصيبت نه وروسته هم راکړي .

١٣ - :   لکه څنګه چې پلار خپل رنځور ځوی ته خوراک د صحتمندې لپاره نه ورکوي اوپرې شفقت ښايي ، دغسې الله خپل حبيب په دنيا کې هم ساتي .

١٤ – : د روغ صحتونو والا به د قیامت په ورځ د رنځورانو د اجرونو امیدونه کوي .

١٥ – : په مصیبت کې به ځان نه لاندې خلکوته ګورم چې ښه ده دغسې نه یم .

١٦ – : دنیا د مصیبتونو کور دی .

١٧ – : په مصیبتونو به ځان ته جنت رایادوم چې هلته نه مصیبتونه شته او نه تکلیف .

١٨ – : کېداي شي الله راباندې مصیبت ددې له کبله راوستی وي چې زما اواز واوري او عاجزي مې وګوري .

١٩ – : کله ناکله په دغه مصیبت الله زما له زړه نه داسې رنځونه وباسي چې زما د پوره صحت لوی لامل شي .

٢٠ – : کله نا کله دغه مصیبت ما ته تنبیه وي چې له ځېنو ګناهونو مې توبه نه وي ویستلې ، او یا مې هم د کوم نعمت شکریه نه وي ادا کړې.

٢١ – : کوم مصیبت چې راورسېد هرومرو به رارسیده ، رزقونه او نېټې د الله په لاس کې دي .

٢٢ – : هیڅ څوک هم تکلیف نه په امان کې نه دی حتی

انسان الله ته هم کنځل کوي .

٢٣ - :    چا چې په مصيبت کې اچولی يم ، له هر چانه راباندې هغه ډېر مهربان دی ، هغه لره ثنا ده .

٢٤ - :    شکوې کيلې هېڅ فايده راته نه رسوي .

٢٥ - :    د مصيبت په وخت کې چې ځان ته دا رایاد کړم چې رب او خالق لرم ، نوزړه ته به مې ډاډ راځي .

٢٦ - :    لوی مصيبت د نبي - صلى الله عليه وسلم - مړينه ده ، په دې سره ټول مصيبتونه اسانيږي .

# نوم لړ

ورستنۍ صفحه

له ځان څخه مې ویوښتل ..چې خلکو ته به څنګه داسې علم وړاندې کړم چې :

د خلکو پکې ګټه وي .

په لوستلو کې هم ډېر اسان وي چې لفظي تعقید ونه لري.

ربښتونی وي او معلومات یې باوري وي .

عملي بڼه ولري او اسان وي .

چې له مړینې وروسته مې پرې اجر دوامداره وي .

هغه و چې د پوښتنې ځواب مې ( نیکو عملونو ته د هر مسلمان لاربښود ) راووت !

د دې برسیره مې موخه له کتاب څخه دا نه ده چې ته دې د کتاب څښتن شې ، نا بلکې موخه مې ترې دا ده چې کتاب باید د ژوند په اوږدو کې درسره وي .

له رب کائنات څخه غواړم چې یې راڅخه قبول کړي .

طلال فاخر